# د يوه شاعر

# انديښنې

نوم يې ګټومات او مشهور په غاصب

د فردوسي واقعي شخصيت

پرېږدئ چې يو تريخ حقيقت تاسو ته ووايم

ژباړه: فرهاد ويار

# د يوه شاعر اندیښنې

## احمد شاملو

*تعصب، هغه کرکجن ډنډ دی چې زموږ د هيواد «روڼ اندي» په کې تر ځنډه ډوب شوي دي. زموږ په هيواد کې تعصب د توکم، ژبې، سيمې، فکر، دين، مذهب، جنس او... په بڼه انسانيت، خواخوږي، وجدان، اخلاق او فرهنګ د نيستۍ په درشل کې ودرولي دي.*

*تعصب د ارتجاع، امپرياليزم او تالي ځټو په لاس کې هغه ارزانه او آسانه وسيله ده چې ورسره خپلې ښکيلاکګرې موخې پلي کوي او ولسونه په ټګمارۍ سره د منځنۍ پيړيو په تال کې زنګوي تر څو طبقاتي پوهې ته ونه رسيږي او د مړيپانو په توګه د پانګوالو، فيوډالانو او روحانيانو په رکاب کې توره ووهي او وينه وکړي.*

*همدا ډول زموږ په مېنه کې ښته داسې هنري، ادبي، فرهنګي، سياسي او فلسفي اندونه چې له ارزونې، پلټنې، څيړنې او منطقي تفکر پرته د ميراث په توګه موږ ته رارسيدلي او ښته داسې کسان چې حاضر دي دې ميراثي اندونو لپاره خپل همنوع چارماري او د الحاد پر صليب ميخ کړي او...*

*د احمد شاملو دا پرتمينه وينا مې په دې هوډ ژباړلې چې لږ تر لږه د هغه نوي فلسفي ليد لپاره لاره هواره کړي چې تعصب له خپلې اډانې شړي او پر طبقاتي بنسټونو ولاړ د ټولنې د پرمختګ او د ولسونو په ګټه دريځ غوره کوي. هيله من يم چې دا ګوډه او ماته ژباړه وکړای شي د هغو مبارزو روڼ اندو تنده ماته کړي چې ډير پخوا يې پر هر ډول تعصب لاړې تو کړي او يوازې پر علمي، عيني او منطقي نړۍ ليد باور او ايمان لري.*

*خو بايد يادونه و کړم چې د شاملو له دې ارزونې سره کټ مټ موافق نه يم، په تيره بيا په تاريخ کې د اتلانو د نقش په اړوند. شاملو په دې وينا کې په تاريخ کې د ولسونو او پرګونو ونډې ته اړو پام نه لري او آن کله نا کله ورته په ټيټه او سپکه سترګه هم ګوري. په داسې حال کې چې دا ولسونه او پرګنې دي چې تاريخ جوړوي، نه اتلان او قهرمانان. قهرمانان کولای شي دا بهير ګړندی يا ټې کړي، خو په هيڅ توګه بشپړ تاريخي بهير په يوازې توګه نشي جوړولی. شاملو په دې ډول ارزونې سره له ډيالکتيکي ارزونې څخه متافيزيکي او ايده آليستي ارزونې ته مخ کوي، چې د شاملو په شان پرتمين انسان څخه له تمې ليرې برېښي.*

*فرهاد ويار*

## د ایران د چارو د شننې او څېړنې د مرکز په اتم کنفرانس کې د احمد شاملو وینا
## (د ۱۹۹۰ کال اپریل، برکلي، کالیفرنیا)

### اندېښنه

ډېرو ګرانو دوستانو،

ستاسو په منځ کې شتون او له تاسو سره خبرې کول او اورېدل تل زما لپاره یو مغتنم فرصت او ډېره ښه تجربه ده. خو کله چې سره راټولېږو معمولاً یوازې د سیاسي مسایلو په اړه خبرې کوو، که ښکاره ووایم کوښښ کوو چې د پولې دننه پېښو په اړه خبرې وکړو او هغه څه چې مو په هیواد کې تېرېږي په خپل بنسټېز اندلید سره یې وتلو او داسې نور او نور او دا نو اوس ورو ورو په یو رسم او عادت بدل شوی دی او لږ ډېر یې د دود بڼه غوره کړې. زه په پام کې لرم چې نن شپه دا رسم مات کړم او خبرې له نورو ځایونو څخه پیل او یو بل ځای ته یې ورسوم. غواړم د راتلونکې په اړه د خپلو اندېښنو په هکله وغږېږم. کولای شم خپلې خبرې یوازې په یوې لنډې پوښتنې پیل کړم، خو دې پوښتنې ته د رسیدلو لپاره اړ یم چې لومړی یې مقدمات جوړ او بیا یې زمینه برابره کړم.

فکر کوم چې د دې زمینې د جوړولو لپاره غوره به دا وي چې یو تاریخي حقیقت د بېلګې په توګه راواخلم، ویې څېړم، وړاندې یې کړم او بیا له لاسته راغلي پایلې څخه ګټه واخلم او خپله پوښتنه د هغې په رڼا کې طرحه کړم.

دولس کاله وړاندې مې په نیویارک کې د مهرګان په جشن کې ولیدل چې زموږ دوستان د دې جشن ویاړنه «پر ضحاک د کاوه بریا» ګڼي. البته دا موضوع نه نوې ده او نه هم کومه حیرانتیا لري، ځکه له څېړنې سره سم ډېری دوستان د نړۍ په هر ځای کې چې دي، دا لفظي تېروتنه کوي. زه دا موضوع د هماغه تاریخي بېلګې په توګه چې مې وویل مطرح کوم او په دوو برخو کې یې تجزیه او تحلیلوم، ولیدل شي چې کوم ځای ته رسېږم.

### د مهرګان جشن:

مهر، په اصل کې په لرغونې پارسي کې، میترا یا که سم یې تلفظ کړم میثره و. او مهر یا میترا یا میثره هماغه لمر دی. مهرګان هم چې په لرغونې پارسي کې میثرګانه تلفظ کیده، د ژب دود له مخې یعنې «لمر ته منسوب» معنا ورکوي.

په خپله د میثره یا مهر یا لمر په اړه باید ووایم چې د ایرانیانو له اسطوره اي خدایانو څخه یو و او د ایراني اند د ځلیدو یو ښکاره او ځلیدونکی انځور ګڼل کېږي چې له مخې یې د لومړي ځل لپاره د خدای اند او د خدای تصویر د انسان په بڼه ځمکې ته راځي او که په څېرتیا سره پام وکړئ، وینئ دا هغه بېلګه ده چې وروسته د هغې له مخې مسیح جوړوي.

دلته لازمه ده چې د مطلب په څنډه کې د یوې نکتې یادونه وکړم چې هیله من یم بې ارزښته ونه ګڼل شي:

د مسیح د اسطورې اهمیت په دې کې دی چې مسیح (البته د مسیحیانو په باور) د خدای زوي شمیرل کېږي ـ یعنې د الوهیت یوه برخه. دا الوهیت ځمکې ته راځي؛ د خدای یوه برخه له آسمان څخه ځمکې ته راځي، هغه هم د یوه خاورین انسان په بڼه. له انسان سره د انسان لپاره هلې ځلې کوي، له انسان سره او د انسان لپاره رنځ ګالي او بالاخره د انسان د ژغورنې لپاره ځان بلهاري کوي... موږ له مسیحیت سره هغه ملنډې نه لرو چې پاپ، کشیشانو او واتیکان جوړې کړي، خو د مسیح د اسطورې په فلسفي شننې سره دې ډېرې ښایسته پایلې ته رسیږو چې انسان او خدای د یو بل لپاره

رنځ ګالي، شکنجه زغمي او بالاخره د يو بل لپاره بلهاري کيږي. داسې يوه اسطوره چې ډېره ښايسته، پرتمينه او له معنا ډکه ده.

لنډه دا چې ځمکې ته د خدای راښکته کېدل؛ د خدای تجسد په هغه دردمن قالب کې چې له غوښې، پوستکي او هډوکي جوړ شوی او آسمان ته د مسيح بيا ستنيدنه ټول د مهر يا ميتره د بيلګې له مخې جوړ شوي دي. د مهر په دود کې او د ميترايانو د اعتقاداتو له مخې، ميتره له هغې وروسته چې د انسان په بڼه ځمکې ته راځي او د خاورې د بډاينې او د ځمکې د برکتي کولو لپاره غوا قرباني کوي، بيرته آسمان ته ستنيږي.

دا هم مهر، چې مهرګان هغې ته منسوب دی.

ولې مهرګان، په حقيقت او بنسټ کې د خريفي کال يعنې د مني کال پيل او مهمه ورځ وه. دلته ناچار يم چې بيا څنډې ته ولاړ شم او دا ووايم چې زموږ نيکونو د يو لمريز کال پر ځای دوه نيم کاله درلودل چې عبارت وو له خريفي يا مني او ربيعي يا پسرلني کال څخه چې بحث يې ډېر مفصل دی او زموږ د نننی شېبې له بحثه وتلی دی؛ خو په ټوليزه توګه په لنډو کې ويلی شم چې همدا ظاهراً کوچنی نکته د هغو معتبرو اسنادو برخه ده چې ثابتوي آريايي قومونه د ځمکې د شمال له لوړو څوکو څخه بيلابيلو ټاټوبو او له هغې ډلې نه ايران ته کډه شوي دي، ځکه د کال پيل يې په دوو برخو، دوه مياشتني دوبي او لس مياشتني ژمي باندی ويشل شوی دی او لکه څرنګه چې پوهيږو دا مسئله قطب ته د نژدې سيمو موضوع ده. وروسته، کله چې دا قومونه هر څومره له جغرافيايي پلوه ښکته راغلي دي، د دوبي موده يې اوږده او د ژمي موده يې لنډه شوې او په خپلې کليزې کې يې سمونې راوړي دي چې بالاخره کال يې تقريباً په دوو شپږ مياشتنيو برخو ويشل شوی چې پسرلنی برخه يې په نوروز او د مني برخه يې په مهرګان پيل کيږي چې په دې دواړو ورځو يې جشن لمانځلو.

د مهرګان د جشن ورځ د بغياديش مياشتې، يعنې د بغ يا ميتره له مياشتې سره سمون درلود.

د بغ کلمه په خپله په لرغونې پارسي کې د مطلقو خدايانو په معنی ده او وروسته يې يوازې ميترا يا مهر ته اتلاق کړې ده. بخ چې هم د بغ تصحيف دی په روسي ژبه کې د خدای معنا لري. ښايي ستاسو د پوهې لپاره ووايم چې د بغياديش مياشت د شمس بابلي له مياشتې سره معادله ده چې هماغه شمس يا لمر دی چې د زړې ارمني ژبې معادل يې هم مهرګان دی چې بيا هم د مهرګان يا ميترګانه تصحيف دی؛ سغدي مياشته يې هم فغکان دی چې بيا فغ هماغه بغ د خدای يا مهر معنا لري او د چين پاچايانو ته يې هم له همدې ريښې څخه فغفور يا بغپور ويل چې معنا يې ده د خدای يا د لمر زوی. او بالاخره زردتشتيانو هم دا مياشت مهر نوموله چې موږ يې نن هم کاروو.

دا البته له وخت شميرنې سره هغه تړاو لرونکې نکتې دي چې د ژب پيژندنې او توکم پيژندنې په شان نورو علومو سره ظاهراً ګډې ريښې پيدا کوي او د يو بل په وسيله تأييديږي. [د ظاهراً کلمه مې د دې لپاره وکاروله چې زه په دې علومو کې سوچه بې سواد يم]

په هر حال، لکه څرنګه چې وينو، مهرګان له دې پلوه د ضحاك او فريدون او کاوه له پاڅون او داسې نورو چارو سره هيڅ تړاو نه لري. د دويم کال د نيمايي برخې هغه جشن دی چې د نوروز په اهميت يې لمانځو او د مهر مياشتې (يا د مهرګان ورځ) له شپاړسم څخه د مهر (يا د رام ورځ) تر يوويشتمې پورې د شپږو ورځو لپاره يې دوام درلود. البته دا شونتيا به وي چې د ضحاك نسکوريدلو له همدې ورځې سره سمون درلودلی وي، ولې داسې يو سمون د دې لامل نشي کيدای چې د دې جشن وجودي علت بدل کړي. د ساري په توګه که چيرې ناصرالدين شاه يې د جمعې په ورځ وژلی وي، موږ ادعا وکړو چې هره جمعه د دې لپاره رخصتي ده ځکه چې ناصرالدين شاه په همدې ورځ وژل شوی دی.

مخکې مې دې ټکي ته اشاره وکړه چې مسيحيت د مهرپرستی ټول آداب او دودونه کټ مټ تقليد کړي چې له هغې ډلې څخه د تعميد غسل او د شرابو او ډوډۍ تقديس يادولی شو. دا هم بايد ووايم چې د يو شمير کسانو په باور،

د دسمبر د پنځه ویشتمې نیټې جشنونه چې بیا وروسته د مسیح د کلیزي په توګه لمانځل کیده، ریښې یې د همدې مهرګان جشن ته رسیږي. او اوس چې د مسیح د میلاد خبره راپورته شوه دا ټکی هم باید په لنډو کې ووایم چې په خپله میترایي ایرانیانو د مهرګان ورځ په ورته وخت کې د مشیا او مشیانه د زیږیدنې ورځ ګڼله چې د سامي اسطورو هماغه آدم او حوا ده؛ دا ټکی په بندهشن (هغه مهم کتاب چې له تیرو وختونو څخه موږ ته رارسیدلی) کې هم راغلی دی. البته دلته ډیر نور مطالب هم شته چې زه ناچار یم له هغې تیر شم، د ساري په توګه دا ټکی چې آیا اصولاً مسیا یا میسا (مسیح او مسیحا) هماغه مشیا دی که نه، او دا ډول څو نور ټکي.

خو راځئ چې پر دویمې مسئلې خبرې وکړو، یعنې د حضرت ضحاک قضیه راواخلو.

زما ښو دوستانو! زموږ هیواد په ریښتیا چې جالبه هیواد دی. په دې هیواد کې داسې اندلرونکي سرداران راپورته شوي چې ډیر حیرانوونکي فکري او ټولنیز غورځنګونه یې هڅولي، ثمر ته یې رسولي او کله یې هم تر بشپړ بري پورې مخې ته وړي دي. ډیر انقلابي روڼ اندي زموږ د هیواد د تاریخ په عجیبو وختونو کې راڅرګند شوي چې د هغوی د تاریخي لاسته راوړنو مطالعه نه دا چې ستره ده، نه منونکې هم ښکاري.

البته د ټولو زورواکو یو ګډ چال چلند، د تاریخ کړول دي، او په پایله کې په خواشینۍ سره څه چې نن موږ د تاریخ په نامه لرو، یو موټی دروغ او زړې ببولالې دي چې د بیلابیلو پیرونو درباري غوړه مالانو او چاپلوسانو سره ټولې دي، او دا د حقایقو کړونه او سپین تور ښودل او تور سپین ښکاره کول دومره ډیر دي چې کولای شي ښه نیت لرونکي کسان هم تیر باسي.

د دې تاریخي کړونې ډیره جالبه بیلګه همدا د فریدون او کاوه او ضحاک پیښه ده.

مخکې له دې چې پر دې چارې وغږیږم، باید د اسطورې او تاریخ په اړه د یو ټکي یادونه وکړم: دا ټکی د مطالعې وړ ټکی دی، ډک له مثالونو او شواهدو دی، خو زه په ناچارۍ سره باید په بیړه له دې نه تیر شم او دومره اشاره کوم چې اسطوره یا میت یو ډول افسانه ده چې کیدای شي یوازې د هیلو او آرزوګانو پر بنسټ د پخوانیو انسانانو د تخیلاتو زیږنده وي او په واقعي نړۍ کې د تاریخي حقایقو ملاتړ ولري، یعنې داسې بې منطقه او ماشومانه افسانه وي چې تار او پود یې له یوې تاریخي پیښې څخه سرچینه اخیستې او بیا یې د یو ملت په ذهني چاپیریال کې وده کړې وي او بله بڼه یې نیولې وي، لکه د ابراهیم بن احمد ساماني د ژوند لنډ تاریخ چې د بودا سیدهارتا له افسانه اې ژوندلیک سره ګډ شوی او د ابراهیم بن ادهم په اسطورې بدل شوی دی. په دې صورت کې کولای شو په بیلابیلو سرچینو کې له پلټنې سره دا تاریخي حقایق ومومو، پر هغوی د معرفت وړانګې وشیندو او سموالی او ناسموالی یې فرق او منځپانګه یې پیدا کړو، چې بیا هم د ضحاک اسطوره د هغې یوه روښانه بیلګه ده.

### نوم یې ګئومات او مشهور په غاصب

د ایران په لرغوني تاریخ کې د یوه سړي نوم اخیستل شوی چې ګئومات نومیږي او مشهور په غاصب دی.

پوهیږو چې د کوروش له مرګ وروسته زوي یې کبوجیه د سردارانو او درباریانو او روحانیانو او اشرافو په توافق سره پاچاهۍ ته ورسید او د مصریانو د لوټنې لپاره یې هلته لښکر وویست، ځکه جګړه او نړۍ نیونه چې لومړی د مغلوبو ملتونو د شتمنۍ د لوټنې او بیا وروسته د کلني باج و خراج سره مل وي، په هغه وخت کې د لښکریانو سردارانو ته چې یوازې د اشرافو طبقې څخه ټاکل کیدل، یو ډول ثمرورکوونکی تولیدي کار شمیرل کیده (البته که وکړای شو لوټنې او باج اخیستنې ته «تولیدي کار» ووایو!).

پرېږدئ يو ټوليز حکم صادر کړم او پاکې اوبه مو پر لاسونو توی کړم: د وخت ټول زورواکي ليوني وو. اروا‌پيژندنه په آسانۍ سره دا ټکی ثابتولی شي. او که وغواړم خپل حکم يو څه پراخه کړم ښايي هغه په دې ډول سم کړم چې: د تاريخ د زورواکو په يو څه لاس بر و: ټول د مشنګ له جنسه وو او په ځينو کې دا مشنګتوب د ځنځيري ليونتوب تر وروستۍ کچې پورې رسيده. يعنې شاوخوا کسانو، سرتيرو، مريبانو او په ځته نوکرانو يې هومره شاوخوا غوړه مالي کړې ده او دومره يې ورته لکۍ خوځولې ده او ځينې ځايونه يې ورته څټلې دي او ورڅخه يې سترې او لويې نابغې، مخور هوښياران او پوه رهبران جوړ کړي چې ورو ورو خپلو حريفانو ته مشتبه شوي دي او دومره شوده کړای شوي دي چې د يوه په ذهن کې ناڅاپي ګرځيدلي چې زه د لمر زوی يم؛ هغه بل ادعا کړې ده چې زه د خدای زوی يم؛ سکندر ادعا وکړه د هغه مار نطفه ده چې د شپې لخوا يې د مور پر بړستنې حرکت کاوه او نادرشاه چې د هماغه لومړيو څخه بالاخانه په اجارې ورکړې وه او پلار يې هير کړ، مدعي شو چې د توري زوی، د توري لمسی، د توري کړوسی او د توري کودی دی. د دې تاريخي ليونو تر منځ د بيچاره کبوجيه حساب له نورو بيل دی. دا ښاغلی د هغو ملنګانو په څير و چې دوړو کولو ته يې اړتيا نه درلوده او دا اړتيا يې هم نه درلوده چې چاپير کسان يې د پوزې مخې ته سره ټوټه وخوځوي او يا هم د لکۍ لاندې ورته اغزی کيږدي. ځکه چې د لومړيو څخه زموږ د مشهورې وينا له مخې د بلوغتيا ماده يې مستعده وه او بې لکۍ نځيدو. دا بې عقله سړی (اشرافو هم له همدې امله پر تخت کښينولی و چې واکې يې ورته په خپلو لاسونو کې ولري) مصر ته د رسيدو او بري او هلته له بې شميرو جنايتونو وروسته سوچه ځنځيري ليونی شو. بې هوښي او کمزورتيا او ميرګي او د ليوني سپي د داړلي انسان حالت يې پيدا کړ او داسې ورځې ته ورسيد چې مصريانو د زړه له کومې باور وموند چې دا ناروغي ورته د مصر د خدايانو لخوا هغه کيفر دی چې د جنايتکارانه کړنو په بدل کې وربانډی نازله کړې ده.

کبوجيه يو ورور درلود چې برديا نوميده. برديا طبعاً د خپل ورور له جنوني حالت څخه خبر و او پوهيده چې نن يا سبا به د هغه د جنون پای يوه تماشه شي او تخت او خول به له لاسه ورکړي. له بلې خوا يې ځينې افکار هم درلودل او څو ځله يې غورځنګونه په لاره اچولي وو او اشراف يې د وينې تږي وو او پوهيده که چيرې کبوجيه وپرځول شي، اشراف به هغه په هيڅ پلمه پرې نږدي چې پر ځای کښيني. همدا و چې مخکې شو او د کبوجيه او پوځ په غيابت کې پر تخت کښيناست. کله چې د برديا د پاڅون خبر مصر ته راورسيد، داريوش او د پوځ نورو مشرانو د کبوجيه سر د اوبو لاندې کړ او پر ايران يې بريد وکړ تر څو په قهرجن ځواک سره د برديا لاس لنډ کړي.

کوم جعلي او لاس خوړلی تاريخ چې نن زموږ په لاس کې دی، پيښه په دې ډول رانکلوي:

*« کبوجيه مخکې له دې چې مصر ته حرکت وکړي د پرک ساس پس په نامه خپل يو محرم ته دنده ورکړه چې په پټه او داسې چې څوک پوه نشي، برديا ووژني؛ داسې نه چې په غياب کې يې د پاچاهۍ هوا د هغه په سر ولګيږي. دا دنده تر سره شوه، خو د قسمت له مخې د ګئومات په نامه د زردتشتيانو يو روحاني چې د مقتول برديا سره يې څيره په عجيبه توګه يو شان وه، له دې راز څخه خبر شو او لکه څرنګه چې پوهيده له هغه پرته بل څوک د برديا له وژل کيدو څخه خبر نه دی، وېې ويل چې زه برديا يم او پر تخت کښيناست.»*

شته جعلي تاريخ د پيښې ادامه په دې ډول کړوي:

*« کله چې په مصر کې دا خبر د کبوجيه غوږ ته ورسيد، څه د دې لپاره چې يو چا په دروغو خپل ځان برديا ګڼلی دی او يا هم د دې لپاره چې دوکه شوی دی او برديا يې نه دی وژلی، ډير په قهر شو (او دلته دوه روايتونه شته:) يو*

*دا چې د جنوني قهر له امله یې ځانوژنه وکړه، بل دا چې بې له ځنډه یې خپل آس ته ودانګل چې ایران ته ولاړ شي او د دې ناځاپي دنګلو له امله کومه توره یې چې ملا ته تړلې وه، په ختېځ کې ننوځي او د هغې له ټپه مري.»*

دا وروستی روایت په بشپړه توګه جعلي دی. د جمشید د تخت د بېرکیندنې ښکاره کوي، پاچا څه چې آن عادي سرتیرو هم توره بی غلافه پر ملا نه تړله.

په هر حال، د دې جعل شوي تاریخ په وینا:

*«پرک ساس پس د بردیا د وژلو راز د یوځ له مشرانو سره شریکوي. هغوی په بیره ځان ایران ته رسوي او پوهیږي، چا چې خپل ځان بردیا نومولی دی د ګئوماته په نوم هغه د زردتشتیانو روحاني دی چې ورور یې د سلطنتي ماڼیو رییس دی. نو له مخکنی پریکړې سره سم په ځانګړي ساعت پر ماڼۍ یرغل وړي او هغه وژني او پریکړه کوي چې سبا په یوه ځای کې سره راټول شي او د هر چا آس چې د نورو له آسونو څخه مخکې وشنیدو، هغه به پاچا شي. د داریوش ناظر هوښیاري کوي او یوه شپه مخکې په وعده شوي ځای کې د داریوش د آس د معارفې وسایل او اسپه برابروي. په سبا سهار د داریوش آس دې ځای ته په رسیدو سره د تیرې شپې د خوندورو شیبو په یاد شنیږي او د دغه شهوتناکه ځناور په مټ، پاچاهي (چې البته سل ځله الهي ودیعه ده) داریوش ته ورکول کیږي.»*

ښه، تاریخ داسې وايي. خو دا تاریخ جعلي دی، دوکه او له دروغو ډک دی، د حقیقت ملنډ وهونکې کړونه ده. راځئ وګورو چې حقیقت څه دی:

لومړی باید ووایم، داریوش او ملګرو یې څه اړتیا درلوده چې کبوجیه ووژني؟

۱. د کبوجیه لیونتوب هغې کچې ته رسیدلی و چې نور نو باید په اړه یې اساسي فکر کړی وی.

۲. یوازې د کبوجیه په وژنې سره یې امکان درلود چې د بردیا وژل د هغه پر غاړه واچوي او په خپله تورن نشي.

۳. لکه څرنګه چې به وګورو د کبوجیه په وژلو سره د بردیا وژنه آسانه وه.

همدا ډول باید ووایم چې:

ـ ولې یې د بردیا له وژنې وروسته د ګئومات دروغجنه پیښه رامنځته کړه؟

۱. ځکه چې له کبوجیه وروسته پاچاهي بی له شکه بردیا ته رسیده او هغوی اول دا چې د بردیا د کړنو او اقداماتو سرسخته مخالفان وو او دویم دا چې د بردیا په وژنې سره په پاچا وژنې تورنیدل چې پایلې یې روښانه وې. دا و چې بردیا یې د ګئومات په نامه وواژه.

۲. د بردیا ټولنیز نفوذ هومره ډیر و چې ولسي پرګنو یې وژل زغملی نشول.

د پیښې د واقعیت ارزونه کولای شي په ښه ډول دغه ټکي روښانه کړي:

موږ د دې چارې د واقعیت پیدا کولو لپاره یو معتبر تاریخي سند لرو. دا سند د بیستون کتیبه ده چې وروسته د همدې داریوش په فرمان پر ډبرې وکیندل شوه، که څه هم د دروغجن حافظه عموماً کمزوره وي، خو هماغه څه چې د تاریخ کړونې لپاره پر دې کتیبې کیندل شوي دي، د دې تاریخي چلي موټی پرانیزي:

زه اوس یوازې د دې کتیبې څو جملې تاسو ته لولم:

*«ما داریوش، ورشوګانې، کروندې او منقولې شتمنی او بردګان بیرته جنګیالیو ته ستانه کړل... ما په پارس او ماد او نورو ځایونو کې هغه څه چې اخیستل شوي وو، بیرته واخیستل.»*

عجب، ښاغلی داریوش، دا جنګیالي خلک چې په خپلې کتیبې کې دې ورته اشاره کړې ده، د پوځ له مشرانو او سردارانو پرته څوک دي چې هغه هم له اشرافې طبقې څخه ټاکل کیدل؟

چا له هغوی بردګان، ورشوګانې، کروندې او منقولې شتمنی اخیستې وې چې تا بیرته هغوې ته ستنې کړې؟

د مسئلې اصلي ټکی همدا دی. حقیقت دا دی چې د ګئوماته په نوم اصلاً څوک نه و او هغه څوک چې د داریوش او ملګرو لخوا یې وژل شوی په خپله بردیا دی. بردیا د خپل ورور او د توطئه ګرو درباري اشرافو له نشتوالي څخه استفاده کوي او واک په لاس کې اخلي او بی له ځنډه د ټولنې د جوړښت په بدلولو پیل کوي، د انقلاب تر کچې بدلونونه راولي. هغه څه چې د هرودوت له لیکنې لاسته راځي، ښکاره کوي چې د خپلې پاچاهی د اووه ـ اته میاشتو په موده کې ډیر ښه کارونه تر سره کوي، داسې چې په ټولې کوچنی آسیا کې مړینه یې ملي ناورین ګڼل کیږي او ورته عمومي ویر اعلانوي. هرودوت، د بردیا له اقداماتو څخه له پوځي اجباري خدمت نه د خلکو معاف کول او د درې کالو د مالیاتو بخښنې یادونه کوي، خو د بیستون کتیبه چې د داریوش په فرمان کیندل شوې ده، ښیي چې موضوع له دې خبرو څخه ډیره ژوره وه:

د بیستون ډبرلیکنه د ورشوګانو او د کرنیزو ځمکو او د منقولو شتمنیو یادونه کوي چې داریوش هغه اشرافو او جنګیالیو (د پوځ مشرانو) ته بیرته ستانه کړي دي ـ ښکاري چې بردیا د اشرافي کورنیو منقوله او نامنقوله شتمنی مصادره او دهقانانو او کرونده ګرو ته یې بخښلې وه.

ډبرلیکنه د هغو بردګانو خبره راخلي چې داریوش هغوی بیرته جنګیالیو ته ستانه کړي دي ـ ښکاري چې بردیا بردګي یا لږ تر لږه برده ډوله کار په بشپړه توګه ملغی کړی و.

یو روښ اندي مورخ په خپلې رسالې کې لیکلي دي:

*«په دې بهیر کې خبره د شتمنیو او ورشوګانو او د معبدونو سوځولو او د مالیاتو بخښل او بیګار (برده ډوله کار) ته رسیږي ( او دا ټول، لږ تر لږه) د هخامنشي ټولنې په اقتصادي او ټولنیزو اړیکو کې د یو کړکیچ ښکارندوی کوي.»*

دیاکونف هم لیکي:

*«د ګئوماتا (او زما په باور په خپله بردیا) د کار له پای موندنې وروسته، داریوش له ډیرو پاڅونونو او مخالفتونو سره مخامخ شو. د دې پاڅونونو موخه د بردیا د وخت د نظامونو بیا راژوندي کول وو چې داریوش ټول ملغی کړي وو. له دې پاڅونونو څخه لږ تر لږه دری یې په ټوله معنا د ولسي غورځنګونو بڼه ونیوله. دا درې عبارت وو له فرادا پاڅون، فرورتیش فرائورت پاڅون او د پارسي هیزدائه پاڅون. داریوش د دې پاڅونونو په وړاندې تریخ او خونړی چلند وکړ، لکه څرنګه چې په بابل کې یې مثلاً یو وار د غورځنګ درې زره رهبران او مشران په دار وځړول.»*

وګورئ په خپله داریوش په دروغجنې ډبرلیکنې کې د فرورتیش د کار پای موندنې په اړه څه وایي:

*«هغه یې ځنځیر تړلی ماته راوست. ما په خپل لاس د هغه غوږونه او پوزه پرې کړه او سترګې مې ورته له کاسې راوویستې، هغه یې هماغه شان په ځنځیرونو او هتکړیو سره زما په دربار کې وساتو او ټولو جنګیالو هغه ولید. له*

*هغې وروسته مې فرمان ورکړ چې هغه په اکباتانه کې پر نيزې کښينوي. همدا ډول مې هغه کسان چې د هغه پلويان وو په اکباتانه کې په يوې کلا کې په دار وځړول.»*

اصولاً دا ليونی ډوله غچ اخيستنه او نه باوريدونکي داړل په کافي ډول د دې غورځنګ ښکاره کوونکی ده او په ښه توګه کولای شي د فرورتيش د غورځنګ د پراختيا او ژورتيا خبر ورکړي.

د تاريخ ړنګ ښودنه اوږده سابقه لري. د انوشيروان پيښې باندې ټول پوهيږي او نه يې تکراروم. دې سړي خور حرموني له روحانيونو سره جوړجاړی وکړ که هغه د ورونو پر ځای پاچاهی ته ورسوي، د مزدکيانو ريښې به وچې کړي.

ليکل شوي دي چې يوازې په يوې ورځ کې په يوه قول سره په ټول هيواد کې يو سلو ديرش زره مزدکيان په چل سره ونيول او له سر څخه تر ملا پورې يې د آهکو په کوچنيو کوهيانو کې ښخ کړل. دې کړنې داسې يوه کرکه رامنځته کړه چې د رژيم تبليغاتي ادارې د هغې د نښو نښانو د ورکولو لپاره ملا وتړله تر څو د عدل په ځنځير او نورو مسخرو تماشو سره له دې خونړې ليونې څخه د عدل پرښته جوړه کړي، او جوړه يې هم کړه او داسې يې جوړه کړه چې وېې کړای شول شايد د تل لپاره تاريخ ته دوکه ورکړي، لکه څرنګه چې نن هم کله د انوشيروان نوم اورو، وغواړو که و نه غواړو د عادل کلمه زموږ په ذهن کې انځوريږي.

*زنده ست نام فرخ نوشيروان به عدل      گرچه بسی گذشت که نوشيروان نماند*
*(ژوندی دی د نوشيروان وياړلی نوم په عدل/ که څه هم ډير کلونه تير شوي خو نور نوشيروان نشته)*

بيچاره سعدي!
لنډه دا چې د داريوش او برديا پيښه درسره ولرئ، څو ورته بيا راستانه شوو.

**اوس وګورو د ضحاک قضيه څه ده**

ښاغلی حصوري چې زما له دوستانو څخه يو نوميالی څيړونکی دی، په يوې ليکنې کې د ضحاک د اسطورې په اړه ليکي:

*جمشيد ټولنه په طبقاتو وويشله: روحاني طبقه، د اشرافو طبقه، پوځي طبقه، د کسبګرو او کرونده ګرو او نورې طبقې. له دې وروسته ضحاک واک ته رسي. له ضحاک وروسته، فريدون چې د آهنګر کاوه له پاڅون سره پاچاهی ته رسي، لومړنی کار چې کوي، ټولنې ته د جمشد د پېر د طبقاتو راستنول دي. د فرودسي په وينا، فريدون همدا چې پاچاهی ته رسي په ښارونو کې ډنډوره اچوي چې:*

*سپاهي نبايد که با پيشه ور      به يک رو جويند هر دو هنر*
*(پوځي نه ښايي چې کسبګر سره / تر سره کړي په يو وخت دواړه هنرونه)*
*يکي کاورز و دگر گرزدار      سزاوار هر دو پديد است کار*
*(د يو هنر دی کار د بل ګُرزوهنه/ د دواړو لپاره جوړ شوي وړ کارونه)*
*چون اين کار آن جويد آن کار اين      پر آشوب گردد سراسر زمين!*
*(که هغه وکړي د ده کار او دا د هغه کار/ ډکه به شي ټوله ځمکه له آشوبه!)*

دا موږ ته ښکاره کوي چې ضحاک د خپل سلطنت په پېر کې چې د جمشید او فریدون د سلطنت تر منځ تیر شوی دی، په ټولنه کې طبقې له منځه وړي دي. البته موږ دوه درې زره کاله وړاندې د ټولنې د طبقاتي ویش په اړه په ځینو شیانو پوهیږو. دا طبقه ویشنه نه یوازې د لرغونې ایراني ټولنې ځانګړنه وه، بلکې نوی اوستا هم چې متن یې په لاس کې لرو، د دې طبقو شتوالی تاییدوي.

ښکاره ده چې د ضحاک اسطوره، په کومه بڼه چې موږ ته رارسیدلې ده، د هغو کسانو د ذهن انځور دی چې د طبقاتي نظام له ګټو څخه برخمن وو. د هغې طبقې کسان چې د ټولنې د هرم قاعده جوړوي، ولې باید هیله وکړي چې فریدون راشي او بیا هغوی بیوزلې کړي یا ولې باید د طبقاتي نظام له راستنیدو څخه په زړه کې ګوره ماته کړي؟

له دوو حالاتو څخه وتلې نه ده: یا دا چې د اسطورې انځورونکي له شتمنې طبقې څخه وو (چې دا ډیر لیرې ښکاري) یا د اسطورې ضبط کوونکو (څه فردوسي او څه هم مصنف خداینامک چې د شاهنامې اخځلیک دی) چال وهلی هغه اسطوره چې د بیوزلو طبقو د هیلو ښکارندوي کوله په هغه ډول یې اړولې چې په شاهنامه کې یې ګورو او له دې لارې یې په صادقانه توګه د ځان او د خپلې طبقې د ګټو ننګه کړې ده. طبیعي ده د هغه چا په نظر چې د طبقاتي نظام له ګټو څخه برخمن دی، ضحاک باید محکوم شي او د بدمرغي کسبګر کاوه چې ټولنیز حقوق نه لري، انقلابي رسالت د بري په درشل کې پای ته ورسیږي او یوازې د آهنګرۍ یو ټوټه څرمن یې د ولسونو د شوده توب لپاره، د پاچا او ولسونو د نه ماتیدونکي پیوستون د نښې په توګه د سلطنتي بیرغ بڼه غوره کړي او فریدون چې پخواني نظام ته د ټولنې ستنوونکی او د طبقو د یوځای کیدنې مخ نیوونکی دی، باید د درناوي په سترګه وکتل شي او تکریم شي.

حضرت فردوسي د ضحاک د پاچاهۍ په برخه کې د هغه له ټولنیزو اقداماتو څخه یادونه نه کوي او یوازې یې په همدې بسنه کړې چې هغه مخکې له مخکې محکوم کړي. واقعیت دا دی، بې له دې چې موضوع څرګنده کړي او د خپل زړه خبره وکړي د بینوا ضحاک حق یې ورته په ورغوي کې ایښی، دوه مارونه یې ورته په اوږو شنه کړي چې ناچاره دی د آرامۍ لپاره یې د انسان د سر ماغزه پر هغوی وخوري. اوس نو تاسو ولاړ شئ د دې ملنډو په اړه له فردوسي څخه پوښتنه وکړئ چې ولې باید د دې مارانو د خوراک لپاره د انسانانو سرونه غوڅ کړي؟ ولې یې د مړو د سرونو له ماغزو څخه کار نه اخیست؟ په هر حال د ژوندي انسان د ماغزو د پیدا کولو لپاره لومړی باید هغه ووژني، که نه؟ هو، نور نو قلم د دښمن په لاس کی دی. تاسې که یوازې د شاهنامې د ضحاک د پاچاهۍ برخې په لوستلو بسنه وکړئ، مطلقاً د قضیې له اصل څخه څه لاس ته نه راوړئ، بس دومره وینئ چې یو بابا پر تخت کښیناستلی چې پر اوږو مارونه لري او ناچاره دی د ځوانانو د سرونو له ماغزو څخه هغوی ته خواړه ورکړي، ترڅو ماران یې و نه ځوروي. خلک تنګیږي او انقلاب کوي او ژوند وربانذی تریخوي او پر ځای یې فریدون پر تخت کښینوي او د انقلاب اصلي اتل هم یو آهنګر دی چې د آهنګرۍ یو ټوټه څرمن یې د بیرغ په توګه په لرګي باندې تړلې. البته فکر ونکړئ چې فردوسی علیه الرحمه نه پوهیده چې د انقلاب کولو لپاره لازمه نه ده چې هرومرو یو شی په لرګی پسې وتړل شي؛ خو دې یوې ټوټې څرمن ته یې اړتیا درلوده چې باید په راتلونکې کې د لوټمارانو او لوټل شویو د طبقاتي پیوستون د کاویاني بیرغ په توګه ورپول شي!

خو کله چې د فریدون د پاچاهۍ برخې ته ورسیدئ، هغه هم په دې شرط چې سرسري له مطلب نه تیر نشئ، ایله به خبر شئ؛ لومړی دا چې د بیچاره ضحاک پر اوږو مارونه یوه پلمه ده او هغه څه چې فردوسي له تاسو پټ کړي او په وخت سره یې خپل غږ نه دی ایستلی، د ضحاک طبقاتي انقلاب دی؛ دویم دا چې په ډیرې حیرانتیا سره دې پایلې ته رسیږئ چې د ضحاک د پېر اتل آهنګر یو شوده جاهل او د بیوزلو طبقو ګټو ته یو خاین انسان راڅرګندیږي!

دا ټکی به یوې خوا ته کیږدو. کوم پاڅون چې خلکو د ضحاک په وړاندې وکړ عملاً د خپلو ګټو په ضد د اشرافي ټولنې له قید او بند څخه د آزاد شویو ولسونو پاڅون دی او په حقیقت کې هغه کودتا ده چې ځپل شویو اشرافو د لومپنانو او اوباشانو په لمسونې سره د ضحاک په وړاندې په لاره واچاوه. پوښتنه دا ده چې ولې د پاڅون له بري وروسته پاچاهي فریدون ته سپارل کیږي؟ یوازې یو لامل لري: فریدون له سلطنتي کورنی څخه دی او د فردوسي په وینا

شاهنشاهي پرتم لري، يعنې سلطنتي وينه يې په رګونو کې ده! (چې زه بنده مطلقاً د دې ډول وينې له کيمياوي فورمول څخه اطلاع نلرم).

دا په اصطلاح شاهنشاهي پرتم هغه موضوع ده چې فردوسي ورباندې تل ټينګار کوي. د هغه تعصب په دې باور چې عادي خلک د ټولنې د لاربښودنې مقام ته د رسيدلو وړ نه دي، شايد د انوشيروان له داستان څخه په ښه توګه څرګند شي:

قباد له اصفهان څخه د تيريدو پرمهال يوه شپه د يوه بزګر له لور سره تيروي او کلونه وروسته خبريږي چې د شاهنشاه يوې شپې کوروداني ورته يو زرين اوربله زوی پيدا کړی دی چې وروسته انوشيروان نومول کيږي او پاچاهی ته رسيږي. ښه، داسې خو نه کيږي. مګر شوني ده چې يو جمجاهي× پاچا له يوې طلاقی ښځې څخه چې د پاچاهي وينه نلري او په بقالې طبقې پورې تړاو لري، نړۍ ته راغلی وي؟ همدا دی چې په يو ډول د نجلی توکم تر څيړنې لاندې نيول کيږي او بې له ځنډه کشفيږي چې نه، کومه انديښنه نشته، نجلی د جمشيد د وينې او رګ څخه ده او د پاچاهانو وينه يې په رګونو کې بهيږي!

د فردوسي د شاهنامې په ټولو پاچاهانو کې، ضحاک هغه يوازينی کس دی چې نشي ويلی:

*منم شاه با فره ي ايزدي                    همم شهرياري، همم موبدي*
*(زيم پاچا د پرښتو له پرتم سره / هوډ مې پاچاهي، هوډ مې موبدي××)*

او دا په خپله ثابتوي چې ضحاک د پاچاهی او آن د درباري اشرافو له کهول څخه نه دی، بلکې هغه کس دی چې د ولسي پرګنو له منځه راپورته شوی دی.

ښاغلی حصوري په دقيقه توګه دې ټکي ته اشاره کوي:

*«له هغه ځايه چې دا پير په ټوليزه توګه له الهي اړخونو څخه چې نورو پيرونو ته يې ورکړی دی، جلا دی، بايد ومنو چې انساني پير دی... دا ضحاک د اسطورې د انځورګر په نظر کې دومره ناپاکه انځور شوی چې نور يې د آژی دهاک (يا ښامار) ايراني لقب او بيوراسب ايراني نوم ته يې هم پام نه دی کړی او يوځلي يې هغه ناايراني او بخصوص عرب ګڼلی او په خپل خيال سره يې دا رټه د ايرانيانو له لمن څخه پريمنځلې ده چې خدای مه کړه يو له هغوی څخه هم د طبقاتي نظام په څير، سپيڅلی امر په وړاندې و نه دريږي!»*

کله چې په تاريخ کې د ضحاک د اسطورې شا ونيسو، دې حقيقت ته رسيږو چې د فردوسي ضحاک کټ مټ هماغه غاصب ګئومات دی چې داريوش له برديا جوړ کړی و.

که تاسو هغه څه ته چې ابوريحان بيروني د ضحاک په اړه ليکلي دي پام وکړئ، د بيستون د ډبرليکنې له مطالبو سره د هغه د مطالبو ورته والي ته حيران پاتې کيږئ. د ابوريحان د متن يو ډير زيات مهم ټکی د ضحاک په پير کې "په کوروداني کې د ګډون" اصطلاح ده او دا دقيقاً هماغه شرمناک تور دی چې پر مزدک بامدادن يې هم لګولی دی. پام وکړئ د مزدکي او ضحاکي معتقداتو نژديوالي ته! مزدک له اړتيا څخه زيات هر ډول خصوصي مالکيت رداوه او اشتراکي مالکيت ته يې تبليغ کاوه. د اشرافو لپاره، ښځې د خصوصي شتمنی برخه وه نه د انساني ټولنې نيمايي برخه. همدا و چې په ډير حراميتوب سره يې د مزدک حکم ته عموميت ورکړ او هغه يې تورن کړ چې ميرمنې د ټولو نارينه لپاره په اشتراکي توګه غواړي. هغه "په کوروداني کې ګډون" چې بيروني، ضحاک ته نسبت ورکړی دی هماغه شرمناک تور دی چې وروسته د مزدک په آئين پسې هم وتړل شو، ځکه کوروداني د زوم او خاوند په معنا ده چې متضاده کلمه يې

میرمن ده. اوس نو دا پرېږدئ چې بیروني د هغه پېر په اړه تاریخي څرګندونې کوي چې یوه اسطوره ده او لزوماً د تاریخ بڼه نه لري!

ښاغلی حصوري خپلې لیکنې ته په دې جملې سره ادامه ورکوي:

*«د ضحاک د حق لاسته راوړنه چې د خلکو د ګټو د خوندیتوب په ګناه د اوږې مار او جادوګر ښودل شوی دی باید موږ د جمشید د داستان له ادامې څخه و نه دروي. ګورو چې فریدون بیا د ایراني پخواني پاچاهانو زوړ قالب پیدا کوي او د ضحاک شپانه پېر ته پای ورکوي او ټولنه هماغې لارې ته بیایي چې جمشید وړله.»*

×جم: د جمشید مخفف چې د شاهنامې د داستانونو له مخې د پیشدادي څلورم پاچا و. لوی پاچا هم ویل کیږي.

جمجاه: لوی او د درناوي وړ پاچا

×× موبد: د مغان مشر، د مغان لوړه طبقه او د زرتشتیانو روحاني مشر

## د فردوسي واقعي شخصیت

ګورئ دوستانو چې د افسانه اي ضحاک یا د تاریخي بردیا حکومت موږ په ناسمه، په تیروتنې، د فردي زورواکۍ، ظلم، بلوس او استبداد د حاکمیت مظهر ګڼلی دی. په بله وینا خپل یوازینی لرغونی شخصیت مو چې له ولسي انقلابي کړنو څخه ډک دی او کولای شوو کارنامې یې د بیستون د کتیبې په شهادت او آن په خپله د شهنامې له مدارکو څخه استخراج کړو، د فردوسي په بدو تبلیغاتو چې د خپلو طبقاتي ګټو او شخصي باورونو له مخې یې کړي دي، په ناوړه توګه ککړوو او بیا کاوه د ولسي انقلاب مظهر ګڼو، په داسې حال کې چې کاوه بل هیڅ شی نه و مګر د ولس ضد یو عنصر.

په دې ډول د یوې نازل شوې آیې په توګه د فردوسي د ویناو بشپړ منل چې له ناچارۍ څخه یې کړي دي، زموږ د بې دقتۍ ګناه ده، نه د هغه ګناه چې خپلې طبقاتي ګټې یا باورونه یې په پام کې نیولي دي.

په دریمې نړۍ کې د رژیمونو سیاست، ارتجاعي او ښکیلاکي دی. هر ژریم په خپلو تبلیغاتي لوډسپیکرانو سره له یوې خوا یوازې هغه څه چې غواړي او یا یې په خپله ګټه ګڼي تبلیغوي او له بلې خوا په سانسور او اختناق سره د هر اند او فکر د خپرولو مخه نیسي، کوم چې د خپلې ګټې پالنې سیاست سره په تضاد کې ویني. ګورئ چې تر اوسه پورې هیڅ څېړونکي تاسو ته نه دي ویلي چې د فرودسي شاهنامه، که د هغه په خپل وخت کې له اوس څخه نژدې زر کاله وړاندې ـ د عرب څېلي، خلیفه ځپلي او د ترکانو سلجوقي ځپلي ایران د خلاصون لپاره مبارزه هڅوله، نن باید له هغې سره په پوهې چلند وشي نه په ترلو سترګو. د پخواني رژیم لوډسپیکرانو له شاهنامې څخه "د ایران د ملي حماسې" په توګه نوم اخیست، په داسې حال کې چې په هغه کې د ایران له ملت څخه کومه خبره نشته او که چیرې وي په ټولو ځایونو کې د وطن او ملت مفاهیم د پاچا په کلمه کې انځوروي. ښه، که له دې پرته وي نو په ایران کې د راډیو د جوړېدو له لومړیو څخه به یې هر سهار د لرغوني لوبغالي د ډهل د ضرب په وسیله د خلکو په اعصابو کې نه ننویستله. آخر نن شاهنشاهي شان او شوکت څه بڼه لري؟ او بیا موږ څه کار لرو چې فردوسي له مطلقه سلطنت پرته بل سیاسي نظام نشو پیژندلی؟

په ایران کې که تاسې غوښتلي وي چې یو کتاب، مقاله او یا یوه رساله تألیف کړئ او په هغې کې مو لیکلي وي چې په شاهنامې کې یوازې ضحاک دی چې شاهنشاهي پرتم نه لري او له ولسي پرګنو څخه راپورته شوی دی؛ او

دې سړي په دې یا هغې دلیل ټولنیز محدودیتونه له منځه وړي او په ژورو ټولنیزو سمونو یې لاس پورې کړی، نو حکومت یې د فردوسي د نظر په خلاف د انصاف او پوهې حکومت و؛ او کاوه نومي پر هغه قیام کړی او د جمشید د وینې او رګ یو تن یې د هغه پر ځای کښینولی نو هغه څه چې په واقعیت کې د کاوه د پاڅون په توګه تعبیریږي د پخوا په شان ښکیلاکي بهیر ته د ټولنې د ستنیدو یوه ضد انقلابي کودتا وه؛ که چیرې یې سر درته د ځانګ لاندی کړی نه وای، نو لږ تر لږه ستاسو د ځیرنو پایلو ته یې د خپرولو اجازه نه ورکوله او که په یو ډول له لاس څخه یې خبره وتلې وای، په زرګونو وسیلو یې تاسو ځپلئ. لکه څرنګه چې له حافظ څخه زما په برداشتونو، د رژیم کلتوري وړې ښکرینو استادانو په پوره شوده توب سره رایه صادره کړه چې ما باید محاکمې ته وکاږي، او وروسته چې اوضاع بدله شوه په پریکنده توګه یې د هغې د خپرولو مخه ونیوله.

هو. حقیقتونه او واقعیتونه موجود دي او هلته دي: په شاهنامه کې، د بیستون په ډبرلیکنه کې، د حافظ په دیوان کې، په هغو کتابونو کې چې لوستل یې کفر او الحاد ګڼل کیږي، په هغه فلم کې چې سانسور یې د لیدنې اجازه نه ورکوي او په ټولو هغو شیانو کې چې دولتونه او سانسور یې د اخلاق په نوم، د بد ښوونې په نوم، د فکر د ویجاړونې د مخنیوي په نوم او په زرګونو نورو نومونو او پلمو کوښښ کوي چې ولسي پرګنې پرې نږدې له هغوې سره مخامخ شي.

د نړۍ په هر ګوټ کې، هر واکمن رژیم چې یو څه ممنوع الانتشار وشمیرل، زه ځان ته حق ورکوم چې فکر وکړم د هغه ژریم په کار کې کوم چل شته او غواړي یو څه له ما پټ کړي.

ځینې نظامونه د سانسور پلي کول په دې وینا توجیه کوي چې: "موږ نه پریږدو میکروب زموږ بدن ته راننوځي او زموږ او د خلکو فکري روغتیا خرابه کړي." هغوی په خپله هم پوهیږي چې ببولالی وایي. د ټولنې فکري روغتیا یوازې له مخالف اند سره د مخامخ کیدو په پایله کې خوندي پاتی کیږي. ته یوازې هغه وخت پوهیدلی شی سم فکر کوئ چې زه ستا منطق په خپل ناسم اند سره ولمسوم. زه هغه وخت کولای شم خپل نیمګړی فکر اصلاح کړم چې ته د خبرو اجازه ولرئ. ابته خبرې پیرودونکي نه لري، خو ته چې زما خوله تړې زما د اند له سموالي، زما د اند له اغیزې څخه ویریږي. تا خلك غولولي دي او نه غواړي چې غولونه دې بربنډه شي. آیا د ټولنې له فکري روغتیا څخه اندیښمن یاست؟ نو ولې یې د آزاد فکر مخه نیسئ؟ د ټولنې فکري روغتیا د خرافاتو او جاهلیت پر ضد په همدې واکسیناسیون کې نغښتې ده چې عوارض یې سملاسي د تعصب له لومړۍ تبې سره ښکاره کیږي. د عقل د روغتیا لپاره یوازې د فکر آزادي اړینه بریښي. هغه څوك چې د فکر او تعقل له غوړیدو څخه تاوان ویني د روښنپاله فکرونو مخې ته دیوال دروي او کوښښ کوي چې ولسي پرګنې د هرې ناندریزې خبرې پر ځای د هغوی قوطي شوي غولونکي احکام ومني او خپل اندونه د همدې قالبي احکامو پر بنسټ چې ورته ګټور ښودل شوي دي، برابر کړي. هغه پرګنو چې په دې توګه خپل فکري خلاقه ځواك له لاسه ورکړی وي، د حقیقتونو موندلو او د خپل ټولنیز ځواك د پیژندلو او د شعور موندنې او آن خپلو انساني حقوقو ته د پاملرنې لپاره د خپلې ټولنې د اندیالو فکري فعالیت ته اړتیا لري؛ ځکه د هغه حقیقت موندل چې د دوکې او چل په کنده کې ښخ شوی وي عاشقانه ریاضت غواړي او ښایي په آزاد اندي او له جاهلانه تعصب پرته ملاتړ یې وشي چې دا هم په ناچارۍ سره په دغه ډول شرایطو کې له پرګنیزو ولسونو څخه پوره نه ده.

د ضحاك یا بردیا پیښه د دې اصل د ښودلو لپاره یوه بیلګه ده چې حقیقت څومره زیانمن کیدونکی دی او په ورته وخت کې د حقیقت له څیرې څخه د دوکې د دوړې لیرې کول څومره ستونزمن دي. ښایي په همدې تالار کې داسې کسان وي چې له فردوسي سره د دې ډول تعصب درلودو او زما د خبرو له امله وغواړي زما ګوګل پیدا کړي او ژبه مې له ګوګله راوباسي؛ یوازې د دې لپاره چې زرکلن دروغ نن د هغوی د باورونو یوه برخه ده او ورڅخه لاس په سر کیدل ورته ناشوني ښکاري.

پخوانیو کسانو ویلي دي "لمر د سیوري لاندې نه پاتې کیږي او حقیقت به بالاخره یوه ورځ وویل شي." دا حکم شاید یو وخت د منبنت او د منلو وړ و، خو زموږ په عصر کې چې کوچنۍ تیروتنه کولای شي په لوی ناورین بدله شي، په هیڅ توګه د دې وخت نشته چې لاس تر زنې لاندې کښینو او د صبر لاره غوره کړو چې یوه ورځ نه یوه ورځ به حقیقت پر موږ مهرباني وکړي او د خپلو وریځو یوه څنډه به موږ ته راښکاره کړي.

نن هر یو له موږ څخه چې دلته سره ناست یو، باید خپل ځان په پرمختللي منطقي تفکر سنبال کړو چې وکړای شو د حقیقت وړم پیدا کړو او بې له ځنډه پېځایي ومومو.

موږ په داسې یو عصر کې ژوند کوو چې نړۍ په بې شمیره پنډغالو ویشل شوې ده. په هر پنډغالي کې یې یو بت اوچت کړی او هر پنډغالی اړ شوی چې د یو بت عبادت وکړي. هیله من یم دوستانو چې نه خپل ځان وغولوئ، نه هم زما خبرې پرته له څه چې دي بل ډول تعبیر او تفسیر کړئ. زما اشاره مطلقاً د کَمْکي ځوانانو بت جوړونې او بت پالنې ته متوجه نه ده چې مثلاً نڅاګر مایکل جکسن یا حرفه اي بوکسر محمد علي کَلې ورته د خدای بڼه نیولې ده. زما اشاره د کیش شخصیت کوچنی، غمجنې او ډیرې شرمناکې ناروغی ته ده چې موږ ډیری وربانديې اخته یو، موږ چې په ټولیزه توګه ادعا لرو، لګن لګن خبرې رااچوو او مثلاً خپل ځان په داسې عالي افکارو او اندونو سنبال ګڼو چې د نوې بردګۍ له جغ څخه د بشریت ژغورونکي دي.

هو، نیغ په نیغه هدف ولم او شخصیت پالنه یادوم. هممدا د نوي عصر شرمناکه بت پالنه یادوم چې موږ ټول وربانديې اخته یو او په هغې ټکي اوښتی چې د جلاتوب او ټولیزو نیتونو د شیندنې لامل شوی او موږ هر یو په خپلو لاسونو شاوخوا د تعصب دیوالونه راچاپیر او ځان مو په هغو کې زنداني کړی. انسان د بشریت نومیالیو څیرو ته درناوی کوي او د هغوی د افکارو له ډیوې څخه رڼا اخلي، خو کله چې چې له خپلو ځمکني او ټولنیزو نومیالیو څیرو څخه د عبادت وړ آسماني بت جوړونې بانديې پیل کوي، نه یوازې دا چې هغه نومیالي کس ته یې سپکاوی کړی، بلکې د همدې نومیالي کس د نیت پر خلاف، د دې پوه ښوونکي د تعالیمو پر خلاف چې غوښتل یې هغه د تعصب او ناپوهی له کندې څخه رابهر کړي، یو ځل بیا د تروږمو، ناپوهی، ابتذال او جاهلانه تعصب کندې ته ورغورځوي، ځکه شخصیت پالنه د ناچارۍ له مخې له ځان سره وچ مغزه تعصب او دګماتیک قضاوت رامنځته کوي او په خواشینی سره دا هغه ویروونکې ناروغي ده چې اخته شوې کس په خپل لاس خپلې ریښې په ترښځې (تیشې) وهي.

یو پوه او با فرهنګه انسان ولې باید د خپلو افکارو او باورونو په وړاندې تعصب ولري؟ تعصب لرل د یوه جاهل، بې منطقه او بې کلتوره سړي کار دی: د یو څه په اړه چې نشي کولای په منطقي ډول فکر وکړي، د یوې بشپړې جوړې شوې عقیدې په توګه یې مني او په اړه یې هم تعصب ښکاره کوي. یو لرګی ورته ښکاره کړه او ورته ووایه چې ته دې لرګي پیدا کړی یې، باید مخې ته یې په ورځ کې درې ځله ټوپونه او دانګونه ووهې او هر ځل دیارلس کرته ووایې زه شوړمبې یم. بیا نو ګوره! څو کاله وروسته بیا راشه او ورته ووایه خانه خرابه! دا حرکتونه چې کوې او دا اَوْتې بَوتې چې د عبادت په نوم شاربېږ، کومه معنا نه لري! ـ پوهیږئ څه به وشي؟ـ د هماغې لرګي لاندې چې عبادت یې کوي، څملوي دې د یو بدمرغه کافر په توګه دې یو غوږ تر بل غوږه پورې غوڅوي!ـ دې ته وایو تعصب. اوس نو مهرباني وکړئ دې شرمیدلي بنده ته وواياست چې ولې د هغې ښاغلي تعصب یو جاهلانه کار دی، خو زموږ تعصب چې خپل ځانونه د درایت خاوندان هم ګڼو عاقلانه دی؟

د رژیمونو تبلیغات هم کټ مټ د ولس د همدې تعصب ښودنې له خاصیت څخه ګټه اخلي. لږ تر لږ موږ ایرانیانو کې تعصب ښودنه ډیره محسوس کیږي.

د تصوف له ستر غورځنګ څخه که سترګې پټې کړو او د هغې د پخیدلو او نفوذ لاملونه استثنا وګڼو، په بیلابیلو دلیلونو سره چې یو دوه نیم زره کلن دودیز خفقان یې د ایران په نامه ټاټوبي بانديې تپلی دی، زموږ د هیواد اندیالوـ چې د قضا له مخې شمیره یې هم هومره کمه نه ده ـ هیڅکله په سمه د اندونو او عقایدو پاکوالی او ناپاکي او وړتیا او ناوړتیا او

سموالی او ناسموالی، لکه څرنګه چې ښايي له ټولنې سره شريک کړی نه دی. کله چې ولس غافل، ناپوه او بې سواده پاتی شي او جاهلانه تعصب يې ړوند کړي، اند او فرهنګ هم له خوځښت څخه پاتې کيږي او په خپل لاک کې محبوسيږي او په پايله کې، حرفه اي تبليغاتچيان کولای شي د عامه تعصب پر بنسټ خپل هر اند د منلو وړ وګرځوي. کله چې د شاه صفي په څير سړي خور او ظالم انسان ته د ظل الله لقب ورکړل شي، هغه انډيوال چې ټول فکر او ذکر يې الله دی، څه وکړي؟

بيلګه درکوم:

هغه پرتمين مبارزاتي بهير چې په کې يو ملت توانيدلی دی خپل ټول فرهنګ راڅرګند کړي او د هغې په مټ د نيواکګرو پوزه پر خاورو ومږي، په ايران کې د تصوف غورځنګ دی.

ټول پوهيږو چې ايرانيان هغه شين بڼ وغولول چې عربانو ورته د مساوات او عدل او انصاف په شعارونو ښکاره کړی و. د ايران ټولنيزو کړکيچونو دا غوليدل لا هم ګړندي کړل تر هغې چې ويلی شوو له هيواد څخه کومه دفاع ونشوه او دروازې له دننه د يرغلګرو پر مخ پرانيستل شوې. خو ايران ته په دننه کيدو سره عربانو خپل شعارونه هير کړل او داسې چلند يې له ايرانيانو سره پيل کړ چې په واقعيت کې د فاتح او مغلوب او د خواجه او برده چلند و. د صحرايي عرب* دا چلند په ايران کې هغه ځای ته ورسيد، چې پلي ايرانيانو به حق نه درلود پر خرو سپاره چيرته ولاړ شي. وقاحت يې هغه ځای ته ورسيد چې ويل يې که چيرې سپی، خنځير او ايراني د جومات له مخې تير شي، د عرب لمونځ باطل دی!

بې فرهنګه دښتي عرب هغه ملت ته چې پياوړی فرهنګ يې درلود او له خپلو هنري لاسته راوړنو سره يې زړه نښلونکې ليوالتيا درلوده وويل چې موسيقي حرامه ده، شعر مکروه دی، نڅا ګناه ده، تجسمي هنرونه (انځورګري، ډبرکيدنه، مجسمه کيندنه او څيره جوړونه) مطلق کفر دی. خو ايرانيان له خپل ټول فرهنګ سره راپاڅيدل او د دې پريکون په وړاندې ودريدل او جګړې ته يې ولاړل او د هماغه دين پر بنسټ يې چې د هر ډول فرهنګ، هنر او ذوق ځليدل يې په هغه ناورين ډول منع کړی و، د تصوف غورځنګ رامنځته کړ او مينه ناکه ځمکنی شعر او موسيقي او نڅا يې د قول او سماع په قالب کې خانقاه ګانو ته يووړله. ډيره ښکلې معماري يې د اسلامي معمارۍ په توګه راوړاندې کړه او په دې جومات او هغه زيارت يې داسې ګنبدونه جوړ کړل چې رنګ په هغوی کې د کنګل شوې موسيقي او طرحونه او انځورونه يې په حقيقت کې د نڅا د ممنوعه او ځپل شوې عقيدې ښکارندوي کوي. دې غورځنګ نه يوازې دا چې ايراني فرهنګ وژغورو، بلکې د ايرانيانو ټول عربي ضد او ملي احساسات يې هم د سمبوليکو عنصرونو او انځورونو په توګه د يوې ټوکې په توګه د اسلامي هنر په خورجين کې وردننه کړ. د اسلامي هنرونو انځورونه له دې پلوه په رښتيا هم

---

* *احمد شاملو د ايران اندياله او ولسي او مبارز شاعر که څه هم په خپله د تعصب په وړاندې پريکنده دريځ لري، خو له بده مرغه لکه څرنګه چې وايي په موږ ايرانيانو کې دا تعصب ډير محسوسيږي، د عرب ولس په وړاندې له کرکجن تعصب څخه کار اخلي، هغه څو ځای عربو ته صحرايي، بې کلتوره او دښتي وايي او هيروي چې همدا د عرب ملت که له جغرافيايي پلوه په دښتو کې اوسيږي، خو فکرونه يې له آسمانه هم هسک دي. شاملو ولې بايد ادوارد سعيد، نزار قباني، محمود درويش، سليم جبران، صادق جلال العظم، جاحظ، خليل جبران، سميع القاسم او داسې نور عرب ليکوالان او په ورته وخت کې عرب پرمختللي غورځنګونه د خپل ايراني تعصب له امله هير کړي؟ په داسې حال کې چې شاملو عرب ته دښتي او صحرايي وايي، جاحظ د عربانو د دويمې او دريمې پيړۍ لوی ليکوال، د ايرانيانو په اړه داسې ليکي: «ايرانيان ويناوال لري، خو د ايرانيانو هره خبره او هره موخه چې لري د اوږد فکر، کار او د مستقلې هڅې او د مشورې او مرستې او د تفکر د ادامې او د کتاب د مطالعې ثمره ده. لومړنی يې يو علم لري، دويم يې څيړي او دريم يې پر هغه يو څه ډيروي...» - ژباړن*

د مطالعې وړ دي: د ساري په توګه د جقه په نامه د بوټي طرحه هماغه د صبر ونه ده. هغه ونه چې د زرتشت له آئين څخه سرچينه اخلي او ايرانيانو ته يوه مقدسه ونه وه او د تلپاتې او ابدي زرغونتيا نښه چې بې له شکه د هغې کتارونه مو د جمشيد د تخت په کيندنې کې ليدلې دي. د اسليمي د مشهورې طرحې قوسونه او دايرې هم که له ما وپوښتئ، وايم چې هماغه انار ـ زرتشتي مقدسه ميوه ـ دی چې سټايليزه شوی او ګل يې د اور لمبو ته پاتې کيږي چې د آتشکدو يادونه کوي او سر يې کياني تاج ته ورته والی لري.

**پريږدئ چې يو تريخ حقيقت تاسو ته ووايم**

دا پيچلی سيستم چې زموږ ماغزه دي که څه "زده" نه کړي، که "ياد نه کړي او تمرين ونکړي" دوه ټکيزه هم نه ارزي. که انسان له ليوه سره په يوه ځنګل کې لوی شي، نه يې ماغزه ورسره مرسته کولای شي او نه هم کولای شي خپل ناطق ځواک کشف کړي. د نړۍ له نورو ځايونو سره څه کار نه لرم، زموږ په خپل ايران کې د ملت پرګنو د خپل تاريخ په اوږدو کې د تعقل شونتيا، د تفکر شونتيا، د دې څيز چې ماغزه ورته وايي د کارولو شونتيا نه ده درلودلې. البته دا چې د يو ملت په تاريخ کې د خوارزمي او خيام او حافظ او بيروني او ابن سينا په شان نوابغ راڅرګنديږي، بيله مسئله ده. لومړی دا چې خوارزمي او خيام او د دوې په څير کسانو نشو کولای ټولنيز انقلاب طرحه کړي او يا يې مخې ته يوسي او پوهه يې هم هومره نه وه چې د ولس په کار راشي، نو برغولی ورباندې کيږده! يوازې د حافظ په شان ستر سړی چې زما په اند په ټولو مهالونو او په ټولو ژبو کې د ټولو شاعرانو سرتاج دی، کله چې د ولس په لاس کې ولويږي برخليک به يې څه وي پرته له دې چې په ديوان يې فال ووينې؟

زه نه وايم چې زموږ د ملت پرګنې قاصر يا مقصر دي، خو زموږ تاريخ ښکاره کوي چې دغه ولس تاريخي حافظه نه لري، ډله ايزه حافظه نه لري، هيڅکله يې هم له خپلو ټولنيزو عيني تجربو څخه څه نه دي زده کړي او هيڅکله يې ورڅخه ګټه نه ده اخيستې او پايله يې دا چې په هر ځای کې چې چاره هډ ته رسيدلې ده، يوې څنډې ته شوی، له يوه ابتذال څخه بل ابتذال ته او دا عرضي حرکت يې د پرمختګ حرکت ګڼلی، ځان يې غولولی؛ زه د انقلاب کارپوه نه يم، خو هيڅکله مې سترګو له خودجوشه انقلاب څخه اوبه نه دې څښلې.

خودجوشه انقلاب هغه بې قوماندانه پوځ ته پاتې کيږي چې ډير د ماتې خوړلو او دښمن ته د نيواک د وخت ورکونې لپاره په کار راځي، نه د دښمن د ماتې او په کلکه ځپلو لپاره. هر هغه ملت چې تاريخي حافظه ونلري، انقلاب يې که هر څومره هم له مقطعي پلوه "پرتمين" توصيف شي، په پايله کې هغه بڼه غوره کوي چې وويل شول. يعنې پايله يې له يوه ارتجاعي شي سر راپورته کول دي او خلاقانه عمل به تر سره نه کړي. د زرتشتي مُغانو او روحانيانو د بلوسګرۍ په وړاندې چې چره يې ورته په هډ کې ښخه کړې، د عربانو دوکه خوري. ورونه ورته پرانيزي او دوه سوه کاله وروسته کله چې د عربانو له فشار څخه پوزې ته راځي او د تصوف غورځنګ رامنځته کوي، بيا يې هاتي د هندوستان په فکر کې لويږي او زرتشتي عناصر چې په هومره تاوتريخوالي سره يې ليرې اچولي دي، رامخې ته کوي او د عربانو د خوړولو لپاره له کياني تاج سره د انار د ګل د ورته والي له امله اسليمي طرحې پنځوي ـ هنر يې مخې ته ځي، خو عملاً ټولنه شاته درومي. شاه اسماعيل د سياسي لاملونو له امله رامخې ته کيږي تر څو مملکت شيعه کړي (څه چې ګواکې له سياسي پلوه ډير ښه دی ځکه هيواد له نابودۍ څخه ژغوري)، ولې دا کار په ډيره لويه بيه تماميږي: په ايران کې د پوهې او هنر او فرهنګ د لاسه ورکولو په بيه او همدا ډول د هغه نژدې نيم ميليونو انسانانو د مړينې په بيه چې دې ته چمتو نه دي بل مذهب ومني او نه غواړي چې له سنيتوب څخه لاس په سر شي او په خپل اذان کې ووايي علي ولي الله. خو همدا ولس چې د تورو له ويرې شيعيان شول يا يې په شيعه ګرۍ تظاهر وکړ، څو موده وروسته په بشپړ ډول دا موضوع هيروي او د تاريخي حافظې ځای يې داسې تعصب نيسي چې راشه او تماشه يې وکړه! آن مني که پنځه سنيان ووژني نيغ په نيغه جنت

ته ځي. خپل پاچا ته چې په ورته وخت کې مذهبي رياست هم لري او پر ځان يې د علي د درشل د سپي لقب ايښودی دی، مرشد کل وايي او په رکاب کې يې د دين د لوړوالي لپاره توره وهي او نړۍ نيسي، په داسې حال کې چې د مرشد کل شپه او ورځ د شرابو په څښلو تيريږي او د بل هيواد د پاچا د شرعي ښځې لاسته راوړلو لپاره د هغه هيواد خاوره په کڅوړه کې اچوي!

خپل مطلب ته راستانه شوو:

لنډه دا چې، انځورګرۍ او نڅا او موسيقی او شعر لاس په لاس ورکړل او کټ مټ د اسلامي مرکزونو، د خانقاه ګانو له منځه په خوځښت راغلل او د دې فرهنګ چې له ښايست څخه ډك و، کوکارې آن ظاهراً د مسلمانو خلفاو په ماڼۍ کې هنګامې جوړې کړې. تر دې ځايه د مقاومت او مبارزې مشري د آزاد اندو او متفکرينو په لاس کې وه او د خلفاو د دربار د کلکې او سختې صوفې وژنې او د سرغړونکو صوفيانو له تري تم کولو سره سره، تصوف تر هغې ځای نفوذ وکړ چې خانقاه ګانې عملاً د مذهب په اصلي مرکزونو واوښتلې.

له بده مرغه دلته وخت نشته دا ښکاره کړم چې عربي اسلام څه و او هغه اسلام چې ايراني تصوف ورڅخه جوړ شو، څه و، خو کولای شم له خروار څخه د موټې د بيلګې په ډول د صوفيه مشرانو د معتقداتو يو کوچنی ټکی راوړم:

*«صوفيان په خانقاه کې سره راټول شوي وو چې له بهر څخه د اذان غږ پورته شو: "الله اکبر" (خدای لوی دی). شيخ سر وخوځاوه او ويې ويل: ـ و انا اکبر منه (زه له خدای څخه لوي يم!)».*

خو راځئ وګورو د تصوف خبره کوم ځای ته ورسيده؟ هيڅ. وروسته له هغې چې تصوف خپل ټولنيزـ سياسي رول تر سره کړ، د ايران پاچاهانو هغه له فرهنګي او ملي منځپانګې څخه تش کړ او د بې غيرتۍ او مفتخورۍ او درويش مسلکی په بڼه يې واړاوه او ورڅخه يې يو خوشې شی جوړ کړ ترڅو بې له ځوريدلو وکړای شي د عربو خلفاو د دربار په نوکرۍ او مزدورۍ ووياړي او د هيوادپالو او خپلواکپالو وينه توی کړي.

البته دا لنډه او راغونډه شوې طرحه وه چې وړاندې مې کړه او شوني ده چې ځينې برداشتونه مې ناسم وي. دا طرحه مې د دې لپاره ورکړه ترڅو وويلی شم هغه ستر غورځنګ څه و او څه ترېنه جوړ شول. خو وروسته چې مغرضو مزد قلمه تاريخ ليکونکو چې د ورځې په سياست سره يې خبرې وکړې، تصوف د هماغه لومړيو نه له مفتخورۍ او درويزګرۍ او درويش مسلکۍ پرته بل څه نه و او موږ هم دا حکم د يوې نازل شوې وحې په توګه ومنو.

که ويلي يې دي چې انسان وژونکی دوکه مار او اپورچونيست انوشيروان د عدل او انصاف نښه ده، دا حکم موږ هم د نازل شوې وحې په توګه منلې ده او که فردوسي تيروتنه کړې يا يې له چلمارۍ کار اخيستی او د ضحاك اسطوره يې په دغې بڼې اړولې ده، آن زموږ تحصيل کوونکو او حقيقت ليوالو د هغه دا حکم هم د نازل شوې وحې په توګه منلی دی.

ما د تصوف د غورځنګ او د ضحاك د اسطورې په اړه د ناسمه قضاوت موضوع د دوو تاريخي بيلګو په توګه مطرح کړه چې تاسو ښاغليو دوستانو ته ښکاره کړم چې حقيقت څومره زيانمن کيدونکی دی. دا بيلګې مې راوړلې ترڅو خبر ووسئ چې څومره حرمونې زموږ د قضاوت او برداشتونو په لاره کې ناست دي چې کولای شي په يوه جادو سره ورګه شړومبې او سپين تور ښکاره کړي او رنګ شوی پيل مرغ د کويلې پر ځای موږ ته ښکاره کړي. دا بيلګې مې ځکه راوړلې لکه څرنګه چې مې د خپلو خبرو په لومړيو کې وويل ترڅو زما د انديښنو د څرګندولو لپاره لاره پرانيزي؛ هغه ځوروونکې انديښنې چې له سبا، له راتلونکې مې روح توږي او اره مې پر هډوکو راکاږي. اوس چې مې دا زمينه برابره کړې ده، کولای شم تاسو ته ووايم که د پولي دننه د تعصبي شرايطو له امله د ټولنې روڼ اندو ته د انساني او ټولنيز رسالت لپاره د عمل کوچنی امکان نشته، له تاسو چې زده کړې لرئ او د ټولنې پوه کسان ياست او دا نيکمرغي مو هم

درلودلې چې څه موده له اختناق څخه ليرې ځان روزنه وکړئ، په هيڅ توګه د منبت نه ده چې هر حکم او هر ايزم يوه نازل شوې وحې وګڼئ او دمخه جوړ شوی هر حکم ناسنجيده او بې له فکره ومنئ. دا امکان تاسو ته شته چې څه موده د آزاد اندۍ له نعمت څخه برخمن ووسئ، نو له دې شونتيا څخه تر هغه ځای پورې چې کولای شئ ګټه واخلئ. که د ايران د پوهنتونونو له يوه محصل څخه دا خبره د منلو وړ وي چې په ناجوړه شرايطو کې د هر ډول مات او ګوډ حکم په منلو اړ دی او د دې حکمونو د ګوډوالي د اټکل کولو لپاره کومه وسيله په لاس کې نه لري، خو داسې يوه خبره ستاسې څخه د منلو وړ نه ده.

تاسې ته د خبرو او ناندريو وخت شته. تاسې دې بحثونو، ناندريو او فکري راکړې ورکړې ته اړتيا لرئ، دنده مو ده، ناچاره ياست، ځکه چې زموږ سبانی ژوند له هغې سره تړاو لري. ځکه که سباته بيا تير وځئ، زموږ ژوند او روغتيا په خطر کې اچوئ او که زه په ناسمې لارې ولاړ شم تا هم کږليچونو ته کاږم. د لږ پوهيدنې خطر د نه پوهيدلو له خطر څخه ډير دی. زموږ پخوانيو خلکو ربښتيا ويلي دي چې: "نيمچه حکيم د ځان بلا، نيمچه ملا د ايمان بلا." د ولسونو ناپوهي يو بالقوه خطر دی، ځکه په ناځايې ډول راپاڅيږي او بې فکره او بې هدفه لاس په عمل وهي؛ خو که ته ونښې کړای سم فکر وکړې، دا بالقوه خطر په يو ناورين بدليږي.

تاسې بايد هره شيبه ځان محاکمه کړئ چې آيا واقعاً هغه څه چې وايم او کوم يې، سم دي؟ آيا کولای شم بې له انديښنې او بې پروا ادعا وکړم که له خپل انساني شرافت څخه وغواړم زما د اندونو او برداشتونو د روغتيا ضامن شي، له يوې شيبې شک پرته دا ضمانت به ومني؟ تاسې حق نه لرئ چې لږ پوه شئ، حق نه لرئ ورپيږئ، حق نه لرئ تير وځئ، ځکه يوازې ليونی کولای شي خپل خيالونه نګه حقيقت وګڼي او د تيروتنې له شونتيا څخه چرت يې هم خراب نشي.

پريږدئ چې وروستۍ خبره وکړم: تاسې حق نه لرئ پر هيڅ يو حکم او آيت چې له پخوا څخه نن ته رارسيدلی او په پټو سترګو مو هغه منلی دی، ايمان ولرئ. له مطالعې پرته ايمان د بشر د پرمختګ په لاره کې خنډ دی. يوازې دروغ او چال له خپلو اتباعو څخه د مطلق ايمان غوښتنه کوي او هغوی ته تلقينوي که شک وکړئ مخ مو توريږي؛ ځکه يوازې او يوازې شک دی چې انسان حقيقت ته رسوي. هغه انسان چې حقيقت موندنې ته ژمن دی، هيڅ دګم، هيڅ فرمول، هيڅ آيت نه مني مګر دا چې په هغې کې لومړی تعقل وکړي، هغه د منطق او عقل په کارځای کې اټکل کړي او هغه وخت ورباندې باور پيدا کوي چې حقانيت يې په يقيني علمي او منطقي دلايلو سره ومومي. کله چې ديالتيکي منطق ما خوابولی شي چې د دوو ويالو اوبه په يوه اندازه نشي کولای ما لوند کړي، زه حق لرم په تاريخي تجربو هم شک وکړم؛ مګر دا چې د يوې تاريخي تجربې د بري شرايط زما د ټولنې له شرايطو سره د سر ويښته په اندازه هم فرق ونکړي ـ بې له ګمانه چې د دوو ټکو تر منځ تر ټولو لنډ واټن مستقيمه کرښه ده، خو په هندسه کې يې موږ ته ويلي دي چې همدا له لمر څخه روښانه ټکی ترڅو په علمي توګه ثابت نشي، د منلو وړ نه دی، خو موږ له دې سره سره په هغو خوشيو شيانو ايمان راوړی که چيرې د عقل په سترګه يوازې کوچنۍ بڅرکي ته هم وګورو، پر خپل شوده توب به وخاندو.

د نړۍ په شته اديانو باندې يوه ځغلنده کتنه وکړئ:

ديني او مذهبي ايمان او اعتقاد، له بت پرستۍ څخه د موسی تر دين او له بوديزم څخه د زرتشت آئين او مسيحيت او نورو نورو پورې، معمولاً د يوې ور تړلې صندوقچې په توګه په ارثي ډول له والدينو څخه اولادونو ته ليږدول کيږي. په قاطعيت سره ويلی شم موږ ټول چې د دې چت لاندې راټول شوي يو، که مذهبي واوسو نو په هغه مذهب باور لرو چې زموږ والدينو درلودلی دی. البته دلته د مذهب په هکله خبرې کوو، نه د دين. دين، اصلي او لومړنی تنه ده. د تاريخ په بيلابيلو پېرونو کې؛ دين، په بيلابيلو دليلونو انشعاب کړی او ګڼ ځانګه مذاهب ترې پيدا شوي او خپله لاره يې غوره کړې ده. لکه چې د اسلام دين څو اويا ځانګې يا مذهبونه درلودل چې نن نژدې يو سلو ديرش څلويښتو ته رسيدلي دي. طبعاً هر مذهب هم ځان ته د روحانيت ټولنه لري. د هر مذهب د روحانيت د ټولنې وګړي هم په ناچاره باور لري

چې یوازې د دوی مذهب په حق دی او نور مذهبونه او ادیان کفر دي او ډېره لویه غلطي کوي. دا هم قبول، ځکه که داسې باور ونلرئ نو باید ولاړ شئ او بل دین خپل کړئ.

اوس نو موږ د یوی شیبې لپاره د جهان شته مذهبونه د کفر او د دین په دعوا پر ځمکې پرېږدو او په خپله الوځو او له بهر، له هغې پورته ورته ګورو:

مسیحي (له کاتولیك او پروتستان او انجیلي او کواکر او ګریګوري او ارتودوکس سره کوم کار نلرو، ځکه دا ټول د کورنیو جګړو مقولې دي)، مسلمان (د سني او شیعه او حنفي او حنبلي او د اسلام له نورو مذهبونو سره هم کار نلرو)، بودایي (له شینتو او کنفسیوسي او دائویي سره یې هم کار نلرو)، برهمني، زرتشتي، مهري، مانوي، بت پرستی، لمر پرستی، اور پرستی، شیطان پرستی، غوا پرستی، یهودي او... ټول په دې باور دي چې زما مذهب په حق دی.

ښه، موږ چې تللي یو پورته او له هغه ځایه دا ټول ګورو، یوه پوښتنه راپیدا کیږي:

بالاخره دا ټول مذهبونه خو نشی کیدای چې په حق وي. عقل حکم کوي چې له دې ټولو څخه یوازې یو یې باید پر حق وي. زما موخه البته یوازې یو مثال دی او د مناقشی بیلګه نه ده. او زه هم په هغه مقام کې نه یم چې د دې مذهب یا هغې مذهب د حق او ناحق یا د ردولو په اړه حکم وکړم. خو دا ویلی شم چې زه یوازې د هغه بودایي کاهن په ادعا چې بودیزم په حق ګڼي، شونې نه ده چې ایمان راوړم، ولې؟ یوازې په دې ساده دلیل چې هغه خپل مذهب له نورو مذهبونو سره له ارزونې وروسته نه دی غوره کړی، بلکې مذهب یې ورته په ارثي توګه رسیدلی او بې له منطق او د انتخاب له حق پرته یې منلی دی، نو ولې یې ادعا سمه وي. خپله بودایي توب یې په ارث وړی او له همدې امله په سستی سره وایي چې بودایي دین په حق دی؛ که هغه د یوه بت پرست په کورنۍ کې زیږیدلی وای او بت پرستي یې په ارث وړې وای، ویل یې بت پرستي په حق ده. آن که یوه شیبه هم ومنو چې په رښتیا هم بودیزم یو په حق دین دی، بیا هم د هغه ښاغلي خبرې زړې ببولالې دي.

با شعوره انسان یوازې په هغه شي باور پیدا کوي چې په خپله یې په منطقي تجربې سره هغه تر لاسه کړی وي. په عیني، علمي، عملي، قیاسي، فلسفي او د ټولو وختي او ځایي شرایطو په دخالت سره یې تر لاسه کړی وي.

انسان یو منطقي متفکره موجود دی او ناچاره باید هومره مغرور وي چې بسته بندي شوي احکام د خپل مستقیم تعقل له دخالت پرته ونه مني. د احکامو منل او پر هغې تعصب ښودل انساني شرافت ته سپکاوی دی. له بده مرغه ښایي ومنو چې موږ ډېر شیان منلي دي یوازې د دې لپاره چې یوه شیبه هم بهر ته نه یو تللي او له بهر، له هغې پورته مو هغې ته کتلي نه دي.

عقیدیتي جګړې او نانډرې یوازې پر دې پیل کیږي چې د دعوا یو اړخ هم حقیقت ته د رسیدلو غوښتونکی نه دی او یوازې غواړي خپله ضعیفه عقیده پر نورو ومني. او دا ډول جګړه او مرافعه د همدې لپاره ډېره سپکه او بې ارزښته او بې اعتباره او زرګري او بې بنسټه او په پایله کې ناهیلي کوونکی ده. له امریکا سره ټلیفوني خبرې کوم. هغه خوا وایي چې د سهار اته بجې دي او زه وایم چې د شپې اته بجې دي او دواړه هم رښتیا وایو. خو دعوا مو پورته کیږي، ځکه چې یو بل په دروغو تورنوو. هغه له کړکۍ څخه بهر ته ګوري او پر ما چیغه وهي: له دې ځلانده لمر سره څرنګه ځان ته اجازه ورکوې چې ما وغولوې او دومره بې خونده دروغ ووایې؟

زه هم له کړکۍ نه بهر ته ګورم او چیغه وهم چې: یا خدایه! وګوره حرمونی څرنګه غواړي پر ما ملنډې ووهي!

او زرګري جګړه پیل کیږي، په داسې حال کې چې موږ هیڅ یو دروغجن نه یو؛ یوازې آسمان د کوهي د سر په اندازې ګورو، یوازې د یو بل په شرایطو نه پوهیږو، پوهه او هوښیاري نه لرو او په خپلو سطحي برداشتونو او استنتاجاتو کې وختي او ځایي شرایطو ته دخالت نه ورکوو.

آیا دا حیرانوونکی شی، دا د مغز په نامه وسیله او فکري سیستم چې یوازې او یوازې پر دې ځمکه د هغه په تملك کې دی، او له دې سره سره غالباً ناروغ ډولو احکامو پسې پسه ډوله ګرځي او دا د فکر کولو ښایسته ویاړلې وسیله بېکاره پرېږدي او ورڅخه معطله وسیله جوړوي؛ د انسان مقام ته سپکاوی نه دی؟

**خبره رالنډه کړم**

پر ولسونو هیڅ ډول اعتراض نشته چې دا ډول او هغه ډول فکر ولري یا داسې او هغسې عمل وکړي، خو پر زده کړیال قشر چې هم د ځان او هم د ټولنې د برخلیك په اړه اندیښنه لري، د متفکره ماغزو پر صاحبانو اعتراض شته. پر هغه محصل چې له آزادۍ محروم دی او د بحث او پلټنې وخت ورته نه ورکوي کوم اعتراض نشته، خو پر تاسې چې د پلټنې او مباحثې او د فکري راکړې ورکړې له امکاناتو څخه برخمن یاست، اعتراض شته. په ځانګړې توګه چې تاسې خپل ځان څنډې ته نه کاږئ، او نه وایاست چې په ما یې څه، هڅاند یاست او مسوولیت منئ، نو پر تاسو ده چې د هغې ټولنې پر ځای په ژوره توګه منطقي فکر وکړئ چې د منطقي تفکر شونتیا له هغې اخیستل شوې ده.

ښه، اندیښنه پاروونکې پوښتنه زما دا ده:

ـ تاسې ځوانان چې سپېڅلي خلك یاست، له ځانګړې ختې څخه جوړ شوي یاست، په نوم او ډوډۍ پسې نه ګرځئ، یوازې د ټولنې ګټه او روغتیا غواړئ او د عقیدې لپاره خپل سر ورکوئ، د کار په کوم ځای کې یاست؟ څه تګلاره په لاس کې لرئ؟ څه غواړئ وکړئ؟

چا زما دې دردجنې پوښتنې ته ځواب نه دی ورکړی، تاسې خپل ځان ته څه ځواب ورکوئ؟ که زړګی مو نه ماتیږي، زه یې په خپله وایم. ګمان کوم ځواب به دا وي چې:

ـ د سبا فکر سبا ته!

دومره باید ووایم چې ستاسې لپاره خواشینی یم.

له دې پوښتنې هم تیریږم او یوه بله پوښتنه، نرمه پوښتنه کوم:

ـ سبا څه باید وکړئ؟ آیا تاسې له خپل ځان نه یو څه جوړ کړي دي چې سبا په کار راشئ؟ په انتقادي نظر مو ځانته کتلي دي چې وګورئ فرهنګي بیخ بنسټونه مو په کوم حال کې دي؟

زموږ د ملت زیات شمیر اولادونه چې له هیواد څخه بهر زده کړې کوي، له ایران نه د وتلو پر مهال په دوو کاملاً ښکاره دلیلونو روغ فکري بیخ بنسټ نه لري. لومړی په دې دلیل چې اصولاً په هغه عمر کې نه دي چې فرهنګي چارې او ملي هویت ورته اهمیت ولري یا یې زموږ د هیواد له ټولنیزو شرایطو څخه لازمه پوهه تر لاسه کړې وي، او دویم په دې دلیل که چیرې هم دې چارو ته یې پام ګرځولی وي، د هیواد سیاسي فضا هغه فضا نه وه چې په هغې کې په آزاده توګه توانیدلی وي د دې چارو په اړه فکر او ارزونه وکړي. یو دا چې دې ډول ګډورو څېړنو او پلټنو لپاره منابعو ته د لاسرسي شونتیا نشته، بل دا چې کومې شمیرنې او معلومات چې درکول کیږي، د اعتماد وړ نه دي. په یوې وینا چې دروغ پر درې ډوله دي: کوچني، لوی او شمیرنې. آن ټولنپوهان مو زموږ د ټولنې د حقایقو په اړه سمه پوهه نه لري. نو کاملاً طبیعي ده چې زموږ ډیری ځوانان د هیواد نه د وتلو پر مهال د هغې تنکۍ لښتې په شان دي چې له یوې ونې څخه یې غوڅه کړئ او هیڅ ریښه له ځان سره ونلري. که زما غوندې په دې عمر او وخت کې جلا وطنۍ ته اړ شي، په هر حال ریښې له ځان سره راوړي، خو یو ځوان محصل د یوې قلمچې په شان دی؛ هغه تانده نیالګی دی چې تازه یې له ونې پرې کړی وي او په دې پردۍ خاوره کې یې ښخ کړی وي او کومې ریښې چې نیسي، ناچاره له همدې اوبو او خاورې یې نیسي. منم چې ریښې نیسي خو په هغې خاورې کې چې د هغه نه ده او سبا چې وطن ته ستون شي، هغه ریښې له ځان سره وړي چې بدلې دي، زموږ فرهنګي جغرافیې سره پردۍ دي او ورسره نه جوړیږي.

زه د زړه له کومې هیله من یم چې په خپل دې قضاوت کې یو سلو اتیا درجې تیروتلی ووسم، خو تر هغه ځایه چې مې د هیواد نه بهر د محصلینو له ټولنو سره اړیکې درلودلې او په سترګو مې لیدلي دي، په هغوی کې مې د دې ډیرې زیاتې حساسې موضوع په اړه کومه اندیښنه نه ده لیدلې.

ډیر دوستان مې لیدلي چې ظاهراً د هغوی په خیال ایراني چاپیریال لري. یعنې شنه قورمه خوري؛ له چمبې سره د حوض په شاوخوا کې نخیږي؛ د کاباره اي نڅاګانو پر ځای د بابا کرم نڅا غوره ګڼي؛ که مذهبي عقیده ولري، لمونځ کوي او روژه نیسي؛ کومه غوښه چې خوري د هغې د حلالو د څرنګوالي په اړه ډیر حساسیت ښکاره کوي او یو شمیر یې هم د غوښې خوړل بالکل پریږدي او که ونشي کړای پړونی په سر کړي، له دستمال سره ګوزاره کوي. له خپلې خوابنې، اوښې، خینې او ورندار سره د یوه چت لاندې ژوند کوي او په دې غلط ګمان چې خپل دسترخوان پر ځمکې هواروي نو خپل ملي فرهنګ یې ساتلی دی او ایراني پاتې شوي دي. عادت له فرهنګ سره غلطوي او خپل ځان غولوي، ځکه هیروي چې نازبین ته یې آن خپله مورنۍ ژبه یاده نه ده او له پارسي څخه یې یوازې د پدرسوخته کلمه زده کړې ده چې په معنا یې هم نه پوهیږي او په امریکایي ګړدود ورڅخه ډیر تماشایي شی جوړیږي!

ما په خواشینۍ سره ډیر نړۍ لیدونکي زده کړیالان لیدلي چې د خپل هیواد د سبا په اړه هېڅ هېڅ اندیښنه نه لري. ډیر زده کړیالان مې لیدلي دي کله چې سبا وطن ته ستانه شي، د یوه بهرني مشاور په شان به یو پردی موجود وي بې له دې چې ایراني فرهنګ سره کومه آشنایي ولري؛ له خپل تاریخ، له خپلو ادبیاتو، له خپل هنر سره کومه آشنایي ولري او بالاخره به یو اړخیزه او نه خلاقیت لرونکی موجود وي، که ډیر ښه یې وګڼئ نو یو ماشین یې ګڼلی شئ. دلته چې وطن یې نه دی هم پردی دی او هلته چې وطن یې دی هم پردی دی.

په دې یا هغې رشتې کې د تخصص درجې ته رسیدل په هیڅ توګه د فرهنګ او د فرهنګي هویت موندنې په معنا نه ده او هغه ځورونکې پوښتنه چې تل ما ته راولاړیږي دا ده چې سبا زموږ هیواد به د دې زده کړیالانو هر یو تن ته اړتیا ولري، آیا سبا چې دغه ځوانان هیواد ته راستانه شي یوازې لیسانس او پوهاندي او له پوهاندۍ پورته یا په دې او هغې علمي رشتې کې دیپلوم لرل به زموږ د هغو ټولو اړتیاو د پوره کولو لپاره بس وي؟

د خپلو خبرو پای ته رسیدلی یم، زما زیات ګړیدل تاسې ټول ستومانه کړي یاست، خو پریږدئ دوستانو یو ځل بیا هغې مطلب ته ستون شم چې له دې مخکې مې وویل:

انسان چې له یو مختنق چاپیریال څخه خوشې کیږي، لومړنی احساس چې د خپل فکر او عقیدې د آزادۍ څخه لاسته راوړي، هغه یې هیجاني کوي او دا ډیره طبیعي موضوع ده. دا احساس چې انسان کولای شي د عقایدو د تفتیش د شبکې د مامورینو د څارنې له ویرې پرته په اعتماد او خپلواکی او بشپړ واک سره د ځان لپاره عقیده او فکر ټاکي، ډیر ښادي بخښوونکی دی. خو دا احساس ځینې وخت د خویدلو لامل او کله د دې لامل کیږي چې موږ بې له فکر او تعقل څخه لومړنۍ عقیده چې ورسره مخامخ کیږو ومنو؛ یعنې په مطلقه او مجرده توګه او بی له دې چې فکر وکړو دا عقیده د ایران په فرهنګي شرایطو کې د کارولو وړتیا لري که نه. زه باید دا احتمال ومنم چې دا یا هغه عقیده مې په ښه نیت خو په پټو سترګو منلې ده، نو نه ښایي چې د هغې په اړه وچ تعصب وښیم. باید دا احتمال ومنم چې شاید نورو کسانو هم زما په ورته شرایطو کې عقیدو ته لاسرسی موندلی وي، نو عاقلانه نه ده چې له هغوی سره دښمني او شخړه پیل کړم، ځکه د دې تعصب ښودنې او د سرتمبه توب پایله له ځانګې ځانګې کیدنې پرته بل څه نه دي؛ له ګوښه کیدنې، کوچنۍ کیدنې، جلا کیدنې، زیانمن کیدنې، کمزورې خورې ورې هستې جوړونې او له واقعیتونو څخه لیرې پاتی کیدنې پرته بل څه نه دي.

"څوک چې دوستان نه دي، دښمنان دي"، هغه احمقانه شعار و چې اصلي شعارورکوونکي یې هم وخوړل. موږ حق نه لرو داسې فکري چلند ولرو. موږ حق نه لرو د خپلو تیوریګانو نه دګم شیان جوړ کړو او د خپلو سیاسي کتابونو په آیتونو مذهبي ایمان پیدا کړو او جاهلانه تعصب وښیو. دا زموږ فرض دی کوم شیان چې مو سم ګڼلي دي په یو بشپړ

دموکراتیک چاپیریال کې، له شرمناکه قشري تعصب څخه آزاد چاپیریال کې، په یوې روښانه فضا کې چې هلته یوازې عقل او منطق او استدلال د درناوۍ وړ وي؛ له هغو نورو شیانو سره چې نورو سم ګڼلي دي محک ته وړاندې کړو، که موږ تیروتي وو، نور به زموږ د لارې څراغ شي او که نور په خطا ځي موږ به یې د خویدلو مخه ونیسو.

موږ له ډیرو اړخونو څخه د فکري راکړې ورکړې او د متقابل تفاهم لپاره یو آزاد چاپیریال ته اړتیا لرو:

۱ـ هیڅوک ادعا کولای نشي چې زه سم فکر کوم او نور غلط. د داسې ځانځانی اعتقاد لرل سوچه شوده توب دی.

۲ـ که د یو فکر د حقانیت او روغتیا شونتیا لیدل کیږي، هغه فکر لزوماً باید تبلیغ شي. د داسې فکر منفردول او ځنډې ته شړل بې له شکه جنایت دی.

۳ـ موږ هر یو تن باید کوښښ وکړو چې منطقي کسان ووسو او دا خصلت یوازې د نورو عقیدو له خلکو سره د خبرو اترو او د بحث له لارې لاسته راتللی شي.

۴ـ دګماتیکي عقیدې چې د انسان په باور کې په ډېرې بدل شوې دي، یوازې د فکرونو او اندونو د تبادل او تقاطع له لارې کیدای شي لیرې وغورځول شي. هغه څوک چې له نورو سره له فکري تقابل څخه ډډه کوي، متعصب دی او تعصب له جهالت او ناپوهۍ پرته بل مفهوم نه لري.

۵ـ حقیقت یوازې د فکرونو په دموکراتیک اصطکاک راڅرګندیږي او موږ باید هغه ډول کسان ووسو چې له حقیقت پرته بل څه ته سر ټیټ نه کړو. او له هغه څه پرته چې حقیقي او منطقي دی، بل څه ته د سپیڅلتیا په سترګه ونه ګورو آن که له آسمان څخه نازل شوی وي.

زموږ هیواد سبا د دې ډول روحیاتو کسانو ته اړتیا لري ترڅو ټول ځواکونه یو موټی پاتې شي، او زما پوښتنه دا ده:

ـ آیا له ځان نه مو د هیواد د راتلونکې لپاره یو ګټور کس جوړ وئ؟

خو دا هغه پوښتنه ده چې ځواب یې باید یوازې تاسې ته قناعت درکړي.

